## ددې ګڼې مضامین





اعلیحضرت شهید محمد نادرشاه غازی
دخپلواکۍ د بیرته اخستلو دمعرکې ستر قهرمان

# حریت

د مجنون ژوندون به څه وی چی لیلا مری
څه په کار دی تش کالبد چی زړه دچا مری
زړه ډېوه ده دا د خټو په قالب کی
خدای ومه کړی چی به دا ډېوه دچا مری
چی مرغه ولاړ سی قفس د ماتېدو دی
که به زړه مری تش کوټل دی لاپخوا مری
هیڅ ممکن نه دی پاینت د هغه پېری
زړه چی مری کالبد مجبور دی خامخا مری
حریت د هر ملت د بدن زړه دی
که دا نه وی هم ملت مری هم بقا مری
چی د بل د اسارت په لومه اړ شی
په هغو زړو کی غیرت، خودی، غنا مری

[رشاد]



زموږ محبوب ټولواکی همایوني اعلیحضرت د خپلواکی
ستر حامی چی ددوی دزمامداری په رڼانه
دوره کی زیات وړاندی تګونه
دهیواد په نصیب سویدی

کندهار

د ۱۳٤۷ لمریز کال د وږي میاشت

# پنځوس کاله

## د آزادۍ په رڼا کې

افغان بهادر قوم چې آزادي یې په ځپه کې اخښلې شوې ده د غربي امپریالیزم سره چې د پښتون خواږه کې

خاوري ته د استیلا ستر ګې نیولې وې تر ډېرو پېړیو سختو مبارزو او قهرمانانه

مجادلو وروسته و کولای

سوای چې د استعمار تېرې منګولې نه تنها د خپل ګران هېوا ن څخه وکاږي

بلکې د لومړي ځل د پاره ئې د استعمار تور دېب په شرق کښې د شکست سره مخامخ کې.

او د استعمار هغه تاریخي ماتې ده چې د هندوکش د لمونو څخه شروع کېږي او

پر کانال سویز باندې د اقتدار جنازه د آسیا د

آزادۍ د نهضتو په زور سره وایستل سوه.

یعنې په دې حساب افغانستان نه یوازې د استعمار له منګولو څخه د خپلې خاورې د آزادۍ افتخار لري بلکې د

آسیایي او افریقایي

هېوادو د آزادۍ د نهضتو او د شرق څخه د استعمار په ګلېه کولو کې هم لوی لاس لري تر

سلو کالو مبارزو وروسته موږ د اتوفیق پیدا کړی چې د ډېرې خوا د خپلو تېرو فرصتو د لاسه

وتلو د مافات تلافي وکړو او په عین حال کې دا اجبار هم موجود وو چې د عصر او زمان مقتضیاتو ته هم پوره جواب وو ایو.

یعنې موږ د دوو مسئولیتو سره مخامخ وو.

د یوې خوا د ګذشته تلافي د بلې خوا د حال او آینده ضروریاتو

تکمیل البته د ملي ټینګې ارادې په رڼا کې د پر ناممکنات د تسلیم سرېږدي.

خو موږ هم وکولای سوای د مدبرو پېشوایانو په حکیمانه لارښوونه سره د یوه نوي افغانستان زیر بنا کښېږدو او په

دې پنځوس کاله کښې دا موږ ته میسره شوه چې د ژوند یېلې یېلې مرحلې یو په بل پسې ووهو او خپلې

ورانې او وجاړ وته تر یو حده سر او سامان ورو بخښو.

لکه څرنګه چې اعلیحضرت شهید سعید د خپلواکۍ د معرکې ستر قهرمان دی همدغه رنګه د خپلواکۍ د بېرته اخیستلو

وروسته د نوي افغانستان د زیر بنا بنسټ ایښوونکی هم دی چې د دوی په مدبر لاس سره په هېواد کښې د یوه

پارلماني رژیم بنسټ کښېښود ل سو او پدې توګه ئې د هېواد تشکیلاتي تنظیم منځ ته راوړ ی.

عرفاني اساسات او عمراني تاسیسات اقتصادي تنظیم د دغه خدای بخښلي د څلور کلنۍ زمامدارۍ ستري نخښې دي.

خو کله چې د دغه ملي قائد ستر خلف اعلیحضرت معظم همایوني د مملکت چارې په خپل با کفایته لاس کې

واخستلې د خپل محترم سلف د خط مشي په تعقیب د افغانستان د انکشاف تکاملي سیر ته زیاته چټکتیا ورکړه.

او د ژوند په چارو کې یو نوی تحول او تبدیل دوران محسوس شو او د شاهانه مبارک ذات په حکیمانه لارښوونه ګران وطن افغانستان یو په بل

پسې د تکامل پړاوونه ملي
څو د هیواد د نوي انکشاف
په لاره کې دیوه نوي ګام د

اخیستلو د پاره استعداد
پیدا سو او د ۱۳۴۳ کال د
نوي اساسي قانون په انفاذ
سره ملت د ژوند و یوې جدي
مرحلې ته داخل سو .

د حکومت او سلطنت
انفکاك د یوې ملي مقننه
قوې تشکیل د مستقلې

قضایي قوې منځ ته راتلل
د اقتصادي زیربنا لومړني
اساسات اینودل هغه شاه
کارګډل کیږي چې موږ ته

دیوه ښه او مرفه ژوند د
رسیدلو په لاره کې زیات
امکانات برابروي .

افغان ولس د خپل محبوب
قاید تر حکیمانه هدایاتو
لاندې لکه څنګه چې د تاریخ
په بیلو بیلو د وروکښې د

ازمویني سختې مرحلې
تیرې کړې دي هیله سته چې نن
هم د ملي تاریخ د انوي
مرحله د سالم حرکت دلاري

څخه په بریمره پای ته
ورسوي .

او د خپلواکۍ په رڼا کې
چې د ملي ژوندانه د تنظیم
د ښه کولو وسیله ده اوچت

عبد الصمد «فدا»

# خپلواکي

نیمه پیړۍ پخوا افغان ولس د خپلو غښتلو او توریالیو مشرانو او پر خپلواکۍ مین تبر په موټ او قوت د ګران هیواد د آزادۍ د بیرته لاس ته راوستلو لپاره د لویډیځ لوري د استعماري طاقت «انګلیس» په مقابل کې د هیواد په سرحداتو کې ورسره وجنګیدل څو هغه ؤ چې پدې ملي مبارزه کې د افغان ولس بریالیتوب او کامیابۍ په بر ه شول او خپلو غلیمانو ته ئې داسې ماتې او شکست ورکړ چې تر اوسه پورې له هغوی سره د افغان ولس د توری د مقابلې خاطره موجوده او شته .

د خپلواکۍ تر حاصلولو وروسته افغان ولس د خپل هیواد د پرمختګ او ترقۍ لپاره په تیره نیمه پیړۍ کښې په زړه پورې کارونه کړي دي او د ژوندانه په ټولو چاروکښې لکه اقتصادي ، علمي ، فرهنګي سیاسي ، او اجتماعي پوروښ بدلون او تحول را-وستي دي .

نن چې د ګران هیواد د آزادۍ څخه پوره پنځوس کاله تیرسویدي نو خو د به د افغان ولس د زړه له کومې خوشحاله او مسرور وي چې پدغه دونه مده کې د لوی خدای (ج) په فضل زموږ خپلواکي او تمامیت ښه حفظ او وساتی .

نو لدې وروسته هم زموږ د افغان ولس وظیفه ده چې د خپلې آزادۍ او خپلواکۍ د ساتلو لپاره د تل د پاره سره یو او متحد شو او کوښښ وکړو چې د غه ګټل شوي نعمت لکه څنګه چې زموږ تیر شوي افغانانو په خپلو وینو باندې لاسته راوستلي دي موږ ئې هم په خپلو سرونو ، مالونو ، او په هر راز مادي او معنوي وسایلو سره خوندي کړو .

ګامونه پرمخ واخلو او د سیاسي
آزادۍ په اړخ کښې اقتصادي
آزادي هم تامین کړو .

ځکه ترڅو چې اقتصادي
خپلواکي تامین نسي سیاسي
آزادي نیمګړې ښکاري .

په پای کې د آزادۍ د
معرکې د ستر قهرمان پاك
روح او د آزادۍ د لارې
د شهیدانو او روحونو ته درود
استوو او د ګران افغانستان
ترقي د همایوني اعلیحضرت تر
سیوري لاندې استدعا کوو .



د کابل فاتح والاحضرت مارشال شاه ولی خان
غازی چی دخپلواکی دبیر ته اخستلو په معرکه
کی ئه هېر ېدونکی مړانه ښکاره کړیده



مرحوم والاحضرت سپهسالار غازی شاه محمود
خان د پیوار فاتح

د محمد یوسف (پښتون) ترجمه

# د میوند د غزا یادونه

د افغان ملت د مشهورو جګړو څخه چې د خارجي تیری کونکو په مقابل کې مخصوصاً د انګلیس د استعماري حکومت سره کړې ده یوه هم د میوند مشهوره غزا ده چې د غازي سردار محمد ایوب خان په مشرۍ د ۱۲۹۷ هـ ق د شعبان د میاشتې پر ۱۷ چې د ۱۸۸۰ عیسوي کال د جولای (۲۱) کیږي وسوه دا مشهوره غزا د میوند په دښت کې چې د کندهار د شمال غرب په ۶۰ کیلو متري کې واقع دی ونښته.

دامیر محمد یعقوب خان دخلع کیدو څخه وروسته چې دانګریزانو په واسطه وشول او مخصوصاً د کابل دبالا حصار د نړیدو څخه وروسته چې افغانانو د یادونی دا ثارو ځانګوو ده د کابل اوضاع د انګریز د استعماري حکومت په مقابل کې

برخلاف وا او ښتل او کرار کرار د وطن خواهي حرکات دهیواد هرلور ته تیت شول مخصوصاً هغه وخت چې د (اردل خان) فوج قتل عام شو جنرال خسرو خان محمد اسلم خان کوتوال سلطان عزیز خان د محمد زمان خان زوی د هغو مجاهدینو د جملې څخه وه چې ځانونه ئې د وطن او خاوری د خپلواکۍ د بیرته اخیستلو د پاره قرباني کړل (۱) محمد جان خان وردګ د کابل او غزنی په علاقه کې، ملادین محمد مشهور په ملا

مشک عالم او ملا عبدالغفور لنګری د غزنی او قندهار په علاقه کې کندهاري وطنخواهانو په زمین داور کې او کوهستانی وطنپرستانو په کوهستان کې

د پردو په مقابل کې سر ښندنې او جانبازی شروع کړې. په کابل کې د یغمان، قرغې او چهار اسیاب خلکو هم د خپلو نورو افغاني ملګرو په ملګرتیا د وطنخواهي حرکات شروع کړل.

حتی سپین ږیرو او ښځو لا پدی ملي قیام کې برخه واخیستل چې ځینې ئې زخمیان او ځینې شهیدان سول (۲) تقریباً د هیواد په

هرګوټ کې همدغه قسم حرکات شروع وه تا به ویله چې د افغان لوی ملت د یوې لوې موږدی د پاره د پردو د زور په سبب ټکر ټکر سوی

او بېرته ئې فرد فرد لاش سره ورکړی دی چې په ګډه غواړی و لویدیځ استعمار ته یو بل نه هیریدونکی درس ورکړی او پدی ډول د خپلو نیکګانو او پلرو ځمکه د دوی د ناپاکه قدمو څخه پاکه کړی.

لکه چې وویله شوه د مملکت په هرګوټ کې هر قوم او قبیلې غوښتل چې

---

(۱) افغانستان په ۱۹ پیړی کې تالیف د سید قاسم رشتیا ص ۲۵۱

(۲) سراج التواریخ دوهم جلد ص ۳۵۸

پدې ملي جهاد کې برخه واخلي ، لکه څرنګه چې سردار محمد ایوب خان غازي د خپلو عسکري قواوو سره د همدغه مقصد د پاره د هرات د ښاره څخه د کندهار پرلوري راوهي او د فراه او ګرشک تر تیریدو وروسته وکشک نخود ته نژدې د میوند ودښت ته راورسیدی (۳) د انګریزانو قواوي د جنرال بوروز ( BOROUZe ) په مشري او د نوروخائنانو په ملګرتیا د سردار محمد ایوب خان د مقابلې د پاره د میوند پرخوا ور روانې سوې.



ښاغلی سردار محمد ایوب خان دمیوند ننګیالی فاتح

## د دواړو خواوو د قواوو اندازه:

که څه هم د دواړو طرفو د قواوو شمېر د کوم موثق ځای څخه تر اوسه پورې په لاس نه دی اغلی ، خو یوې انګلسي مجلې چې په لندن کې نشر یږي او سولجر (SOLDIER) نومیږي داسې احصائیه ورکوي:

اول :- انګریزي قواوي: (۵):

۱- د ۴۹۰ نفره شاهي توپچي او شپږ ټولۍ سپاره .

۲ - ۵۵۰ نفره د بمبئي اوله درجه ټولۍ چې په لاسي بمب اچولو او تن په تن جنګ کې ئې زیات مهارت درلودی .

۳ - ۵۵۰ نفره توپک والا چې د (جیکب) په نامه مشهوره وه او د بمبئي د (۳۰) لمبر قواو تکړه ټولۍ وه .

۴- ۴۰۰ نفره د بمبئي د (۳) لمبر قواوو د سپکو ماشیندارانو یوه دسته .

۵- تقریباً د (۳۰۰) تنو په حدودو کې سینګدي سپاره اضافه پر دې شپږ افغاني (۶) توپونه چې دیاغیانو څخه په غنیمت وړل شوي وه او یوه دسته استحکام اوفني ټولۍ هم د دې قوې ملګري کوله .

---

(۳) افغانستان په ۱۹ پیړۍ کې س ۳۶۰ ( ) پورتني کتاب او هغه صفحه .

(۵) ښاغلي سید قاسم رشتیا د افغانستان په ۱۹ پیړۍ په ۲۸۱ صفحه کې د انګریزانو قوه یوه فرقه ویلې اما په پورتنۍ مجله کې غلطۍ دوه زره نفري قید کړیدي .

(۶) باغي افغاني قوه یوه اجنبي اصطلاح ده باید هغه افغاني ملي مجاهدوویل شي .

## دوهم:- افغانی قواوی:

۱- ۶۰۰۰ نفره منظم عسکر چې د امیر محمد ایوب خان سره د هرات څخه راغلی وه.

۲- په حدودو کې د ۳۰۰۰۰ تنو غیر منظم قبایلی غازیان چې اکثره ئې په سوټې او خورد م مجهز وه.

۳- ۴۰۰ نفره د کندهار پاشلی قواوی چې د کندهار تر اشغال وروسته ئې ځای نه دراودی چې ولاړشی.

یادونې:- لکه چې د مخه وویله شوه پورته احصائیه د دیریك فیلپس دیوی انګلیسی سولجر نومی مجلی څخه اخیستل شویده (۷)

## دقواؤ مقایسه:-

۱ - افغانی قواوی د دروو ستو څخه چې پیاده سواری او یوه برخه ئې تو پچی وه تشکیل سوی وی په داسی حال کې چې د انګریزانو قواوی د پیاده، سواری او توپچی برسیره ئې د لاسی بمب د اچولو نیزه وهونکو (د تن په تن جنګ د پاره) جیکب توپك والا او د استحکام دستی چې خورا منظمې وې هم درلودې.

۲- که څه هم د سردار محمد ایوب خان منظم عسکر (۶۰۰۰) بشو دل سوی دی یوازې بیا هم ډیر بشکاری، ځکه که تنها د ده منظمې قواوی (۶۰۰۰) وای د دی ټول مملکت قواوی باید خورا ډیری وای او د انګریزانو مخ ئې ژر را ګر ځولی وای

او هم د بله طرفه د انګریزی مخصوص سیاست په سبب ملی مجاهدین او منظم عسکر هیڅوقت په ګډه او په صحیح صورت نه دی جنګیدلی

ځکه د انګریزانو استعماری حکومت به تل د دوی په منځ کې تر جنګ د مخه په حساسو مواقعو کې نفاق او جنګ اچاوه که دا سببونه موجود نه وای د انګلیس حکومت که هر څونده هم مجهز وای زموږ وطن ته نه شو ای را داخلیدای او باید د انګریز د استعماری حکومت حمله په اولنیو مراحلو کې د شکست سره مخامخ سوی وای لکه چې د افغان او انګریز په دریم جنګ کې چې افغان اولس ګرد سره تر یوه بیرغ لاندې متحد وه او په یوه امر جنګیدل دا موضوع په ثبوت ورسیدل او د انګریز استعماری قواوی سره پردی چې د وطن و خاوری ته را داخلی نه شوی

بلکه پر شا ولاړی او د قطعی شکست سره مخامخ شوی.

## د قواؤ قوماندانان او رهبران:

په انګریزی قواو کې: جنرال بوروز (BOrOUZe) د قواو قوماندان او (ډګرمن کالبریت) په افغانی قواو کې:- سردار محمد ایوب خان د قواو قوماندان او عبدالغفور خان هراتی برګیډ، محمد انور خان

کندهاری کمیدان محمد زمان خان بارکزی او زړه وره پیغله ملالۍ چې د پښتنې پیغلو د پاره ئې د قهرمانی داستانونه پریښودل.

## ≽ د جګړې میدان ◄

انګریزی قواوی د جنرال بوروز په مشری پداسی حال کې چې د موزیك دسته ئې نظامی مارش بږغاوه، او

(۷) د غه مضمون د ۱۳۳۹ کال د اردو د مجلی د کلکسیون په یوه شماره کې ژباړه او خپور شویدی.

پښتنې قواوې دسردار محمدایوب خان په مشرۍ پداسې حال کښې چې د (الله اکبر) نارې ئې غوړې او ته‌رسول کیدې یود بل لورې ته‌ور روان‌وه‌او پرمخ سره راتله‌ځود۱۲۹۷ ه،ق، کال د شعبان پر ۱۷ چې د ۱۸۸۰ عیسوی کال‌دجولای ۲۱ وه دسهار پر لس بجې دوادې قواوې سره‌مخامخ‌شوې، پدې‌وخت کې‌دموزیك‌مارش چپ‌سو امادالله‌اکبر نارو نور هم شدت پیداکړ.

دواړوقواو خپلې جنگې کرښې اشغال او مخامخ شوې‌لیکن هغه لویه واله چې‌دانگریزی‌قواو ومخ ته تیره شوې‌وه او انگریزی قواوځان ته سنگرځنې جوړ کړې‌ؤ دافغانی قواودپاره لوی مانع وگرځیدل (٦٦) لمبر د بمبئې مشهورې ټولی ددې‌ولې محافظه کوله.

ددښمن پیاده عسکرو په دوه‌قطاریزه ډول دجبهې کرښه سرتر سره اشغال کړه پداسې حال کې چې د (٦٦) لمبر قواو د خوا څخه ئې راسته خوادغازیانو دحملې څخه ساتل کیدل.

پدې‌وخت کې د دواړو خواو توپخانو خپل اور بل شروع کړ.

(دیریك‌فیلپس) لیکي چې: (دافغانانو دتوپخانې قوت او د عسکرې افـراد تـر انگریزانو ډیر غښتلي‌وو) لیکن زما په‌عقیده دایوه اشتباه‌ده، انگریزان غواړې چې ددغو پلمو په‌ذریعه دنړۍ‌والو عامه‌افکار واړوی‌اودوی‌وخپلو استعماری عملیاتو ته خوشبین کړی.

اوپدې ډول خپل تجاوزات چې د افغان‌ملت پر مسلم حق باندې ئې کړیدې پټ وساتی،زه عقیده لرم چې د حرب دتاریخ

دلیکنې په وخت کې لیکونکې باید کاملاً بې‌طرفه وې اود انگریزانو درواغ د لته معلو مېږی چې پښتنو په‌هغه‌وخت کې پدې‌اندازه توپونه چې په‌تعداد کې دانگریز تر توپوزیات دی نه درلودل، ځکه چې په‌هغه وخت کښې افغانستان کومه منظمه فابریکه‌دحربې سلاح د جوړولو دپاره‌نه‌درلودل او هغه تعداد چې موجودوه خورازاړه‌وه.

(۸) اویاهغه توپونه‌وه چې دډیر عمر څخه‌دشخړ وپه‌دوران کې ئې د انگریزانو څخه په‌غنیمت اخیستې وه‌چې‌هغه هم د انگریز د شپږ ټولیو په پیمانه وه او نه افغانستان به‌هغه‌وخت کی‌منظمې دتوپ جوړولو فابریکې درلودې چې هرڅوک ئې پر توپونو باندې اضافه کولای.

په بل ځای کی (دیریك‌ـ فیلپس) لیکي چې: (دسردار محمدایوب‌خان دقواو اوضاع‌دمیوند په جنگ کی دا ښکاره کول چې قواو په عصرې او اروپائې سیستم جنگ کاوه).

داهم‌دنومونړی لیکونکی یوه‌اشتباه‌وه‌ځکه‌اروپائې اوعصری سیستم دافغانانو په‌جنگ کښې د افغان او انگلیس تـر د ریم جنگ پورې په‌هیڅ ځای کې نه دی استعمال شوی.

او هم افغانی قواوې چې نومونړی لیکونکی: [منظمې قواوې] یادې کړیدې نه‌دې بلکه دېردو هره‌پلاتیریودې خلکو ته تجربه‌اودعصری جنگ طرز ورزده کړی ؤ.

---

(۸) د۱۹ پېړۍ په‌اخیر او دشلمې پېړۍ په شروع کې یعنې دامیرعبدالرحمن خان دسلطنت په‌دوره کې د کابل په ماشین‌خانو کې توپونه جوړیدل چې مشهور د عبدالرحمن خان په توپو سره‌وه‌اواوس‌هم‌څوعرادې محدود توپونه‌سته اما په خواتر هغه‌فابریکې پداسې فعالیتونو اقدام نـه کولای.

په ښرر راوستلې دي، لکه څنګه چې په خپله دغه لیکونکی لیکي :

(هغه غازیان چې د مذهبي تعصب په اساس جنګیدل اودی حس بالکل لیونی کړي وه څوواری په خپلو تورو اوچړو زموږ د جبهې پر لمړنیو کرښو حملې راوړې لیکن د توپچي دقواوو اود توپکو ددسته جمعي اور په اثر د دوی حملې تر شا و تمبول۔ی شوي...)

لنډه دا چې جګړه په خوراشدت روانه وه او هر طرف کوښښ کاوه چې مقابل طرف ته ماتې ور۔کړي .

پدې وخت کې د میوند څخه د افغاني قواوو حملو د دښمن قواوې چې د نوموړي کلي ترغونډۍ لاندې وې مضطربې کړې او تقریباً یو ه ټولي عسکر ئې په دې حملو کې د ښو واچولې .

پسله غرمې د دوو بجو په حدودو کښې د «جیکب» مشهوره توپکوالي قواوې چې د جګړې په لمړۍ صف کې واقع وه د افغاني قواو د حملو په مقابل کې اضافه مقاومت ونه شو کړای او پر شا تګ ئې شروع کړ ، فیلپس د مضمون لیکونکی لیکي :

(غازیانو په سپر ، نیزو ، تورو اوچړو هری خواته حملې کولې چې د جنګ پر بیریدونکي صحنې ئې اضافتوب کاوه انګریزي قواوې ئې ډیری پریشانې کړې .

د لیکونکي پورتنۍ جمله دا موضوع چې افغاني قواوې لږ او فقط په جاږ حه سلا حو لکه

توره ، سپر ، نیزه مجهزوه تصد۔یقوي او که فرضاً افغاني قواوو توپچي قواوې درلودلای نو تورو نیزو ته څه ضرورت و .

کله چې انګریزي قواو خپل شکست حتمي ولیدی نو ئې د پرشا تګ لاره غوره کړل او ځان ئې د کندهار ولوې لارې ته برابراوه لیکن افغاني سپرو په ډیره میړانه د دوی تعقیب کړل .

څرنګه چې د تعصب غیر منظمو دوی پخپله ځان د دښمن د ګولی په خوله ورکی او خورازیات تلفات ئې ولیدل ، لیکن پښتنې غازیانو د تعقیب څخه لاس وانه خستې ، او په همدغه تعقیب کښ۔ې

زیات شمیر انګریزي افسران لکه ډګرمن ګالبریټ او نور افراد ئې ووژل شول څو بالاخره انګریزي قواوې د لوی شکست سره مخامخ شول او تعقیب د کندهار د ښار تر استقامت پورې ادامه درلوده .

## وژل سوي کسان :

دیریك فیلپس د یوه انګریزي افسر د خولې څخه چې هغه د یوه افغان صاحب منصب څخه اوریدلې وه د (٦٦) نمبر د پیاده قطعې په باره کې لیکي : .

(٦٦ لمبر قوا د افغاني مجاهـدینو د خـوا څخه محاصره شول او تر هغه و خـته و جـنګیدل چې فقط یوولس نفر ئې پاته وه او تر څو چې ئې جبهه خانه خلاصیدل دی یوولسو نفرو زیات تلفات و افغاني قواو ته ورسول څو بالاخره هغه هم ووژل شول) .

نوموړی لیـکونکی د انګریزانو دغه تلفات پدې جنګ کې غیر له ورك شو څخه شل نفره افسران او «۱۸۰» عسکر ښئي ، لیکن یو بـل انګریز لیکونکی چې ( میجر منفورډ ) نومیږی پخپل کتاب کښې چې (د څوسپرو سره د کابل په لوری) نومیږی لیکي چې : په ۱۹ پیړی کې (د میوند جنګ د برتانیې دحکومت پوره ماتې ده) .

سـید قاسـم رشـتیا د (افغانستان درقرن نوزده) دا نګلیسو مؤلفینو د خولې څخه لیکي چې :

دمیوند په جنګ کښی د انګریز، نو تلفات ۱۱۳۰ نفره او ۱۰۰۰ دانی توپک دی نو موړی د افغانانو تلفات ۱۶۰۰ تنه لیکی (۹)

ددواړو خواوو د قوماندانان چی پدی جګړه کی مړه او شهیدان شوی دی عبارت دی د جنرال بوروز او ډګرمن کالبرټ انګریز ی قوما-ندانان، او برګیټ عبدالغفور خان هراتی، محمد انور خان

کمیدان کندهاری محمد زمان خان بارکزائی چی د شرافت د خوندی کیدو او د افغانستان د ملت د خپلواکی په لاره کښی ئی ځانونه شهیدان او قربانی کړی دی.

هغه څه چی دیادونی وړ ده ددی مشهور جنګ د مهمو واقعو څخه د افغانی پیغلو او میرمنو کډون د جنګ په میدان کی دی، د افغانی ښځو یووار بیا عملی امتحان ورکی او دا ئی ثابته کړل چی پښتنی میرمنی په هر وخت کښی د خپلو نارینو سره اوږه پر اوږه ولاړی دی که څه هم د جګړی میدان وی.

پیغله ملالی ددی جنګ د مشهورو قهرمانانو څخه ده، ددی جانبازی او میړانه چی څنګ پر څنګ د افغانی ځوانانو سره د میوند پر ډګر جنګیده و افغان ملت ته د فرانسی د ژاندارک او د الجزائر د جمیلی په اندازه شخصیت او اهمیت لری.

او همدغی فداکاری میړنی پښتنی پیغلی د میوند په میدان کی ویلی دی چی:

که په میوند کی شهید نه شوی
خدای ږو لالیه بی ننګی ته دی ساتینه

نتیجه:-

۱- د شرق او غرب د مؤرخینو او مؤلفینو تر منځ د دواړو خواوو د قوو په باره کی ډیر لوی اختلافات موجود دی.

مثلا ښاغلی سید قاسم رشتیا د انګریز د قواوو تعداد یوه فرقه ګڼی، په داسی حال کی چی د دیریک فیلپس فقط دوه زره نفری غنډ بللی دی.

۲- دیریک فیلپس افغانی قوای ۹۰۰۰ تنه منظم عسکر او قبایلی ښوولی دی چی یوه معلومه مبالغه ده، مخصوصاً دده مبالغه دده دهغه راپور څخه معلومیږی چی شپږ زره منظم روزنی عسکر لیکی:

۳- که موږ (دیریک فیلپس) پر لیکنی فرض کړو چی، وایی: افغانی قوای (۹) زره نفره او انګریزی قوای فقط ۲۰۰۰ نفره دی داسوال پیدا کیږی.

په داسی حال کی چی د اجانب تشکیلات مکمل هم وه او (میجر منفورډ) انګلیسی ولی دا شکست (په ۱۹ پیړی کی برتا-نیی پوره ماتی) بللی ده؟

۴- دیریک فیلپس پخپله د افغانی قواوو د افرادو حملی د چړو، تورو او سپرو په ذریعه ښئی، او حتی وایی چی د احملی د انګریزی توپخانی د شدید اور په قوت بیرته شاته ووهلی شوی.

نو که افغانی قواوی لکه څرنګه چی دی وایی په عصری توپخانه مجهزی وای نو موږ څه مجبوریت درلود چی په چړو، تورو، نیزو او سپرو سره پر دښمن حمله وکو؟

د پورتنی موضوعاتو د تجزئی او تحلیل څخه دا نتیجه اخیستلای شو چی افغانی، میړنی، جنګیالی وطن پرستانو فقط په چړو، تورو، نیزو، سپرو او سوټو د انګلیسی منظمو او عصری قواوو ته چی د قوت او تعداد له حیثه ئی زیاته برتری درلوده.

---

(۹) افغانستان په (۱۹) پیړی کښی د (۳۶۳) صفحی پاورقی.



د افغان او انګلیس په لومړی جګړه کی هغه مهال چی افغانی فاتحین انګلیسی متجاوزین د کابل له درو څخه شړی

د میوند په میدان کې داسې سخته وتاریخي ماتې ورکړه چې دانګریز دولت چې قطعاً ئې په خپل ضعف اعتراف نه کاوه هم داپه۱۹۹ پیړ کې د کاملترینو ماتو څخه ئې په اسیا کې وباله .

دخدای (ج) رحمت اودرود دې وي په هغه وطن پرستانو اوملي مجاهدینو پرروح چې دخپل سرپه ښندلو ئې دافغان ملت پت ساتلی اود تاریخ په اوږدو کې ئې خپل آزاد بیرغ هیڅ وخت د پردو تر سلطې لاندې نه دی پرې ایښی.

افغان ملت د نوموړو دمېړانې په درناوي اوددې لويې تاريخي فتحې په یاد په ۱۳۱۰ ه، ش موافق د۱۳۴۹ ق، کال چې مطابق د ۱۹۳۰ عیسوي کال سره شي دمیوند په تاريخي میدان کې جګ ځلې د «منار یادګار» په نامه جوړ کړ چې د هغه د بنسټ تیږه داعلیحضرت شهید سعید (رح) محمد نادرشاه غازي له خوا کښېښودل شوه همدارنګه د معظم تولواک همایوني اعلیحضرت په ځلانده دوره کې د کابل په لوی واټ کې منار جوړ شو چې هغه د (جاده میوند) په نامه یادیږي .

# د افغان او انګلیس لومړۍ جـــــګړه

وروسته تر هغه چې داعلیحضرت احمدشاه بابا زوی اعلیحضرت تیمورشاه په کابل کې مړ سو نو د زیات شمیر زامنو تر منځ ئې د افغانستان پرامارت دعوې شروع شوې چې هغه په محلي جګړو بدلې شوې او دغه وخت په دوران کې چې انګلیسانو په هند کښې انکشاف کاوه د لته د داخلي جګړو او رامبې وهلې .



د ملالۍ په یاد

دسدوزو د کورنۍ وروستی پاچا شاه شجاع چې دوروڼو له خوا له افغانستان څخه وتلی او له دباندې څخه ئې د افغانستان د پاچاهي د تخت د بیرته نیولو لپاره فعالیت کاوه، نو دانګلیسانو له پاره افغانستان ته د داخلیدو ښه پلمه پیداشوه .

دوی شاه شجاع دې ته تشجیع کړ چې افغانستان پر تخت بیا جلوس وکړي خو دادبدمرغۍ څپې وهلې پاچادلته نه یوائې دخپلې کورنۍ له خوا مطرود شوی ؤ بلکه دسردار پاینده خان بارکزي د کورنۍ څخه دسدوزو وزیران او نائبان هم ځینې ناراضه وه او تر دا ټولو چې دده د چپه کیدو باعث ګرزیدل هغه عام ولس ؤ چې دی ئې دخپل لوی دښمن (فرنګي) ملګری باله .



دمیوند منار

د ۱۸۳۹ کال داپریل میاشت وه چې شاه شجاع د یوه بریتانوي لښکر سره کندهار ته راداخل شو او دلته ئې جلوس وکړ، دافغانستان

ټول خلک په دغه وخت کې د شاشجاع له دغه حرکت څخه ناراضه شوه .

څو انګریزي لښکر په کندهار کښې تریو څه تم وروسته د کابل د نیولو له پاره دغزني خواته روان شو، دې لښکر په چم او خم د پښتنو له قبیلو ي روابطو څخه په استفاده د دې امکانات برابر کړل چې د غزني والي

غلام حیدر چې د امیر دوست محمدخان زوی ؤ د هغه ذکاکا د زوي عبدالرشید خان په وسیله ووهي پدغه کار کې بریالي هم شوه او غزني ئې ونیوی .

دغزني تر نیولو وروسته دا بېګانه خلک کابل ته ورسیدل او هلته امیر دوست محمد خان کابل ور-پرېښود اوبخاراته ولاړ او دانو د۱۸۳۹ کال داګست ٦ ورځ وه چې بریتانوي لښکر

کابل ته ننوت او شاه شجاع ئې هلته په بالاحصار کې د هغه سره مخمل پر تخت کښناوه چې دده اسلاف امیران پر هغه کښېستلي وه .

پدغه وخت کې دانګلستان سفیر چې د انګلستان د خارجه وزارت یو ورزیده

ماموروُ او میکناټن نومیدی دده داړخ سره کښېنوست او سیاسی اداره دانګلیس یوه لجوج او سرسخته مامور «برنس» په لاس کې واخیستله .

دافغانستان ولس چې متواترو داخلي جګړو او کشت ؤ خون ستړي کړي ؤ نو په لومړي ځل کې ئې زړه پدې ارام شو چې دهیواد اداره پریوه پاچا راټوله سوه خو کله چې ئې ولیدل چې دا اداره دیوه اجنبي قوت په لاس کې ده نو په ناچاري سره ئې بیالاس کړ او توره ئې له تیکې را وایسته .

دشاه شجاع په دوره کې دفرنګي اداره چیانو اولښکرو ډېري ناخوالي او ظلمونه وکړل څودهغه په عکس العمل کې دامکانات پیداشول چې یوجنبش پورته سي .

ددغه وخت په درک دهغې ورځې دافغانستان دختیځې خوا ښنتی اقوامو دا پریدی اقوموادمبارزی په بدرګه او په جنوب لوېدیځ افغانستان کښې نورو پښتني اقوامو دبغي او سرکښۍ هنګامه خپره کړه .

ددې او رلمن ډېر ژر هرې خواته خپره شوه څو د شمال له خوا امیر دوست محمدخان له خپل ننګیالی زوی (وزیر محمداکبرخان) په ملګري افغانستان ته راداخل شو .

دوی دهغه ځای اقوام پرځان راټول کړه او پر کابل راروان شوه، دوی دانګریزانو سره په لومړي مخامخ کیدو کې کامیابه شوه خودایو ډېر کوچنی جنګ ؤ .

ددې جګړې په تعقیب انګلیسانو خپله تیاري په پروان کې ونیوله .

دپروان په جګړه کې سره لدې چې دانګلیس عسکر پوره مجهز وه خو پښتنو هغوته ماتې ورکړه .

دغه جګړه نودافغان او انګلیس دلوېې جګړې لومړی بڅرکی ؤ چې داستعمار لوی موجودیت ته ئې اور وروا چاوه اوداورځ نو په تاریخ کې د۱۸۴۱ کال دنوامبر دوهمه وه .

دکټلی جګړې په پای کې یوه داسې واقعه پېښه شوه چې دغلطي اطلاع په ډول امیر دوست محمدخان ته دځان دتسلیمي سودا پېښه شوه او پداسې حال کې چې څوک خبر نه وه په بالاحصار کې ئې ځان

دانګلیس سفیر «میکناټن» ته وسپاره او هغه هندوستان ته ولیږی .

د انګلیس دغه سفیر په هغه لیک کښی چی د بریټانوی هندوایسرای ته ئی لیکلی دی دده تعجب دو را ښرګند وی .

دامیردوست محمد خان تر لیږلو وروسته دلته حالات وروروخرابیدل ځو دکابل په منځ کښی بلواشروع شوه اود «۱۸۴۱» کال د نوامبر په دوه ویشت وزیر اکبر خان کابل ته ورسید .

دکابل په بلواکی دانګلیسانو لوی نظامی اوسیاسی سړی کرنیل (لارنس) ووژل شو .

دکابل ښار کوڅه په کوڅه وجنګیدی اود هغه وخت دوولویو شخصیتونو عبدالله خان اڅکزی اونائب امین الله خان لوګری او نورو شخصیتونو چی ددغه جنبش رهنمایان وه دافغانستان دبزمه ډکه مبارزه ئی بنه توده وساتله ځو غازی عبدالله خان اڅکزی په دغه واقعه کی شهید شو .

میکناټن چی تر دغه شکست وروسته دافغانستان څخه دانګلیس دوتلو هری فیصلی ته حاضرو، خو زړه ئی نه صبریدی اود موقع په انتظار ئی دفرنګی دهغه لښکرانتظار ایستی چی له کندهاره کابل ته ورسی .

دغه لښکر ونکړای شوای چی هلته ورسی اوله لاری وګرزید .

په دغه وخت میکناټن دپیسو اور شوتو په تیتولو پیل وکړځو پدی کار کښی موفق نسو او بالاخره ئی توطئه رسوا اود افغانی مبارزینو په سوک ئی خوله ماته او پردغه سیمه ئی د ژوند سره وداع وکړه چی موږ ئی د ننګیالو د کارنامو افتخار ساتو .

د «۱۸۴۲» کال دجنوری په شپږمه د بریتانیا هغه لښکر چی زموږ له پاره ئی د غلامی پړی راوړی ؤ ځوړسر له کابله روان شوه .

ځرنګه چی دوی دخپل قول اوتعهد څخه بده استفاده کړی وه نودمبارزو افغانانو هغه قهرددوی (۱۷) زره کسیزه لښکر دکابل او جلال آباد تر منځ په دروکی داسی نیست اونابود کړ چی غیر له یو ډاکټر (برایډن) څخه بل نو یو هم ژوندی تر دی خاوره و نه وتت .

ددی جګړی په نتیجه کی دانګلیسانو ۲۰ زره کسه تلفات او (۲۰ ملیونو) پونډه خساره کړی وه اود لندن دمرکزی اداری په قهر د ټو له هندوستان سیاسی واکمن «وایسرای» (لارډ اك لینډ) برطرف او په عوض کی ئی هندوستان ته (لارډ ایلن برو) مقرر شو .

---

وجیزی :

تاریخ

تاریخ موږ ته دلوړو اشخاصو کارنامی فداکاری دلاوری او ملی غرور بیا نوی او پدی وسیله سره زموږ روح قوی ساتی اود لوړ تیا وخواته ئی بیائی .

(اسمایلز)

فتح

په مرګ راضی کیدل وفتح ته رسیدل دی .

(ویکتور هوګو)

# د نوی افغانستان ښځی

تر داخلی اړودوړ وروسته افغانستان چی سل کلنو جګړو او استعمارګرو د بدن شونه ورایستلی وه، بیرته خوا ته او په یوه لنډ دوران کی سقوی اغتشاش هغه څو چنده کمزوری کړ.

داخلی نظام ړنګ، اقتصادی پیکر پارچه پارچه، د نوی فرهنګ او معارف نوم نښان ورک او یوه توره تیاره خوره وه.

هغه مهال چی اعلیحضرت محمد نادر شاه د سلطنت کښېنوست، نو په لومړی سر کی د امنیت لپاره کار شروع شو او تر دې وروسته د عصری فرهنګ او معارف په ساحه کی کار روان شو.

په ۱۹۳۲ کی د طب پوهنځی تاسیس شوه شفاخانی جوړی شوی او د افغانستان لپاره اساسی قانون تدوین سو.

علمی انجمنونه تاسیس شوه، او د خارج سره تجارتی روابط قایم سوه.

د دغو نوو ترقیاتو بلا مرو روانی وی چی اعلیحضرت محمد نادر شاه غازی په شهادت ورسیدی او د هغه خلف الصدق اعلیحضرت محمد ظاهر شاه د افغانستان پر پاچاهی جلوس وفرمایه په دې دوره کښې افغانستان د نړۍ په سیاسی جریاناتو کښې په علاقه برخه واخیسته او د ملګرو ملتو جامعی ته ئې نمایندګان واستول.

د معارف په ساحه کی په ۱۹۳۸ کال د حقوقو او سیاسی علومو پوهنځی په (۱۹۴۱) کال کښې د ساینس پوهنځی په (۱۹۴۲) کی د ادبیاتو پوهنځی تاسیس شول.

همدارنګه په (۱۹۳۷) کښې میخانیکی ښوونځی په ۱۹۳۹ کی د تجارت لیسه په ۱۹۴۳ منځنی دارالمعلمین په (۱۹۴۳) کی د کرهڼې ښوونځی په (۱۹۴۴) کال کی د شرعی علومو مدرسه په (۱۹۵۱) کی د منځنی تخنیک ښوونځی تاسیس شو.

په (۱۹۴۶) کال کی چی د کابل پوهنتون دیوې ځان ته علمی موسسی په حیث تشکیل شو نو شمیر د هغه علمی موسسات چی د کښوری پخوا لیسی او ښوونځی وه په پوهنتون سره ارتباط ورکول شول.

د کابل د پوهنتون په اړخ کی د ننګرهار پوهنتون تاسیس شو په هیواد کښې شمیره پر پخوانی اخبارو پو شمیر نور اخبارونه او مجلی او په هر ولایت کی مطبوعات تاسیس شول.

د افغانستان د سیندونو څخه د استفادې په منظور بندونه جوړ شوه، چی مشهور ئې د کجکی ارغنداب او درونټې په نامه یادیږی د بریښنا د استحصال لپاره نوی فابریکې په کار واچول شوی.

په هیواد کی ډېرې لاری جوړی شوی چی په هغو پخو اسفالت شو ولارو کی د کندهار او تورغنډی، کابل او کندهار، کندهار سپین بولدک کابل او جلال آباد سرک او د سالنګ لویه لار هره یوه ځان ته اقتصادی او اجتماعی ارزښتونه لری.

په هیواد کی د الوتکو میدانونه جوړ شول او هوایی سرویسونه په داخل او خارج کی په کار واچول.

په خارجي لحاظ زموږ
پاليسي پر بې طرفۍ ودريده
چې د نړۍ د ټولو هيوادو الو
منظور نظر واقع شوه .

افغانستان په ۱۹۴٦ کې
د ملګرو ملتو غړی سو اود
صلح ديوه علاقمند هيواد په
حيث د افغانستان نماينده
عبدالرحمن د ملګرو ملتو
دعمومي اسامبلۍ د تير
اجلاس دعمومي رئيس په
حيث وټاکل شو .

د باندونګ په اسيايي
او افريقايي جرګه اود
بلګراد اوقاهرې د بې طرفو
هيوادو نو په کنفرانسو
کې يې ګډون وکړ .

د افغانستان پاچا
اعليحضرت محمد ظاهر شاه
ددوستو هيوادو سره د نيکو
روابطو د پالنې په لړ کښې
يو شمير اسيايي اروپايي
افريقايي او امريکايي
هيواد ته مسافرت وکړ اود
هغو هيوادو مشران
افغانستان ته د بناغلو ميلمنو
په حيث راغلل .

زموږ کلتوري او
اقتصادي هڅو نه نورو
دوستو هيوادو ته ولاړل او
دهغو هيوادو ورته هڅو نه افغانستان ته راغلل
اوددې په نتيجه کې يو شمير

ددوستۍ تړونونه وسوه چې اهغه
د افغانستان او هيوادو نو ددوستۍ
د پايو اود جهاني صلح د استحکام
په عواملو کې مفيده اغيزه کړيده
د افغانستان د نوي ترقياتو په عصر
کې د اعليحضرت همايوني په نيکه
اراده د افغانستان نوی اساسي

قانون تدوين اود ثلاثه قواو
تفکيک عملي شو .

ددې اساسي قانون په
تحت کې د ډيموکراتيک نظام
د استواری دپاره د هيواد
منو رينو او ځوانانو ته د
مدنيت چانس ښه ميسر شو .

ښاغلی (فنا) «د فدا» ټاکنه

# تابوت او ډولۍ

د آسمان زړه تنګ شين ؤ .
ستور وخندل او نځيدل .
لمر ديوه لوی بدلون شاهد ؤ .

د ايشيا په زړه کې، هلته چې د سيندونو په شاوخوا کې هم د غيرت
څپې موجونه وهل او د غرونو په دروکې د مېړانې او وطن پرستۍ
غرور او جذبه ړوزګارته د خاطراتو نه ډک درسونه ورکول، زماني
د تاريخ يوه مهمه پاڼه واړوله .

تر يک دار يدل اود ډولونو آواز د غرونو غوږونه کاڼه کړي وو .
ډير خلک راټول شوي وو .
په همدې ورځ له يوه کوره يوه جنازه وايستل سوه او همدې کور
ته يوه ډولی راغله .

جنازه د غم او ډولی د خوشحالۍ وه .
ددې جنازې د ايستلو اود دې ناوې د لور د پاره ډېرو ځلمو سرونه
ژوند او وينې قربان کړل .

جنازه چې د استعمار منحوس تابوت ؤ د نابودۍ ګورستان کې ښخ شو .
له ډولۍ نه د ازادۍ ناوې راکښته شوه او د وطن د مور په کور کې
د اتحاد، اتفاق، مېړانې او توري سره واده شوه .

د وطن ورتوري، سرې او زرغونې جامې واغوستې اود افغان
ولس د نوي نسل بچيانو ته يې د خپلواکۍ مقدس زيري او
سوغات ورکړه .




# افغان مجاهد وايي

لمبه پر ژړګو مخ پر اغزو پړدم
پر لمبو نښتم د ګبرډي ستني
پرځړې اخلم د ګرزو واري
ګولۍ ته پرانځم د ګرځوان غوټۍ
لاس ننه باسم د پړانګ په زامو
مرلې وهمه افعي ښامار ته
غاړه ور وړمه د دار رسۍ ته
د ټانکو مخ ته غورځوم ورونه
زړه ته راتېري در وړو مه
مرګ ته ور ځغلم اجل را ایسم
مګر دا هیله له مانه مه کړه

اوښ پر کړوړو ښنګ پر مېخو پړدم
سر پر سکروټو تن پر لمبو پړدم
ټټر پر غشو زړه پر نیزو پړدم
خونړۍ توری پر ښار ګو پړدم
پښه پر څپړو د شنو زمرو پړدم
مړ یم د بورۍ پېيلي پر پښو پړدم
یو ګام پر مړو بل پر ژوندو پړدم
د زوېو زړونه د توپ پر خولو پړدم
تر ژوند راګرانې پرسرو اورو پړدم
بلا را بولم غم پر لېمو پړدم
چې پردې واك ته سر پر سجدو پړدم

### څلوریځه

ژوندون د غلامانو چا پر ژوندو شمیرلی دی نه دی
دا ځکه چې مړیو کښې چا با د ار لیدلی نه دی
دبل تر اثر لاندې چې ځوك وي هغه مړ یې دي
«هوتك» وای مدرسه کښې می دا درس ویلی ښه دی

ښاغلی غلام نبي [هوتك]

ښاغلی محمد ګل [نوري]

# استقلال مو د ملت د تندي خال دی

زه بیده په خواږه خوب وم د سهار — خبر نه وم د دنیا په کار و بار
پر ما ږغ شو څه پروت ئې په خمار — ما هم سر ژر را اوچت کې په تلوار
چې کتل ئې یو نیکه وویل مې پلار

نیکه ووې ای زما د باغ نهاله — راغلم زه چې ځان خبر کړم ستا له حاله
ما خبر کړه په ښه شان له خپل احواله — څه دې حال دې ئې خوابدی که خوشحاله
پر آرام یې یا اخته یې په جنجاله

پلاره وویل څه احوال مو د ملت دی؛ — اتفاق، بې اتفاقي که اخوت دی؟
په تکلیف که په زحمت که په راحت دی؛ — ترقي که تنزل کـه پـه ذلت دی؟
را ته وایه ای زویکه څه حالت دی؟

ماوې ای زما بابه او نیکه جانه — شکر، شکر یم خوشحاله هم خندانه
زمونږ ملت ټول پر لار دی روانه — په خوله یو په زړه کې یو په ښه ټینګ ایمانه
هیله سته چې ترقي کړي تر آسمانه

شکر شکر پر وطن مو قراري ده — هم پر لویو او وړو ښه آرامي ده
سر له سره پر مونږ ښه ښکلوي ده — یو د بل هم تر ډېره خوا خوږي ده
زما پر ورور د ورور پر ما مهرباني ده

نه پر چا باندې د چا منت باري سته — نه څه غم نه څه زحمت نه څه خواري سته
نه پر مونږ باندې د بل چا باداري سته — نه مو بغض نه عناد نه شیطاني سته
ټوله یو یو نـه زمونږ بې اتفاقي سته

پلاروې ټول دا برکت د استقلال دی — چې وتاسې ته درکړی ذالجلال دی
استقلال مو د ملت د تندي خال دی — د دولت او د حکومت ښایست جمال دی
بیغمي مو چې په آل او په عیال دی

استقلال دی مونږ په وینو در ګټلی — هسې نه چې مفت وړیا تاسې مو ندلی
بیا له پسه مو وتاسې ته سپارلی — بیا مو ښو مړو عسکرو د رسالې
بیا زلمي پاچا وتاسې ته روزلی

ای زما د سترګو تور د زړه ګې سر — وخپل ورونو ته ووایه زمونږ خبر
ځان معلوم کې په دنیا کې لکه لمر — ښایسته کې ځان پـه عقل په هنر
نن له سبا لـه سره ځان کې برابر

یو مو دین یو مو مذهب یو مو ایمان دی — یو الله یو مو پیشوا یو مو قرآن دی
یو مو قول یو مو عهد یو مو جهان دی — یو ملت یو مو دولت یو مو سلطان دی
یو وطن یو مو مسکن افغانستان دی

# په نصیب چی مو د ابنکلی آزادی ده

نن زموږ د ملی جشن خوشحالی ده
د پښتون د هر یو فرد سر فرازی ده

کلک به ساتو ماهیت د دغی ورځی
د پښتون په ټول کهول دا ضروری ده

خدای (ج) دی ولری زموږ دا خوشحالی تل
د ې آرزوکی می مدام رب ته زاری ده

درنګ په درنګ نوی سازونه ګکورونه
په هر کنج کنار، میلی نغمه‌خوانی ده

لاس ګریوان ته اچوو شکر و باسو
په نصیب چی مو دا ښکلی آزادی ده

دا د هغه شهیدانو برکت دی
چی یی کړی په‌دی خاوری سربازی ده

موږ په ویاړ باندی دهغوی کوو جشنونه
دا یی پاتی په‌میراث زموږ نښانی ده

اروا حانو ته یی استوو درودونه
چی زموږ په برخه کړی کامیابی ده

نن هرچاته موږ په‌هسکو سترګو ګورو
برابره مو هرچا سره سیالی ده

له سهاره ترماښامه له‌ماښام ترسهاره
د «سنګر» دزړه نه لری دغم سودا او پریشانی ده

«سنګر»

---

نن له‌خپله پاك وجدان سره قسم کړی | پخپل علم و په‌عرفان موځان آدم کړی
به‌کمال کی ځان له نور و سره سم کړی | دخپل ځان ښایست په‌توره په‌قلم کړی

لومنی او خودبنی له‌ځانه کم کړی

بیا ویل نی اې زما ګله (نوری !) | درکوو د استقلال مبارکی
مبارك موسه اختر دخپلوا کی ! | وځښتن و ته تل دا کوی زاری

تل دی وی افغانستان او خپلوا کی

ښاغلی «الفت»

# آزادي د دوی په خټه کي ښکاره وه

لمر و لوېدلی و تیاره په خپرېدو وه
د ماښام توره پرده په غوړېدو وه
د وطن په یوه غره کښي ګرزېدم زه
له فطرت سره په زړه کښي بوغېدم زه
ځای په ځای دغره په سر کښي وکورونه
ډکښي بل شوه د ماښام تاوده او رونه
د هر کور سیمه د رڼه معلومېدله
دغیرت وږمه هر لورته چلېدله
د هیبت یوه عجیبه منظره وه
هیبتنا که او مهیبه ننداره وه
د او ګړي د هم دغه غره زامن و
ددې غره په هره ګټه د وی مېن و
دوی لوی شوی و دګټو په ځانګو کښي
په آزاده ښه هوا د غرو سرو کښي
ورته ټیټ ښکارېده هر څه له خپل ځانه
هسکي یې نه بالـه هیڅ شی پرله آسمانه
سادګي کي خاوندان د لوی وقار و
یو په بل یې اعتماد او اعتبار و
هیڅ خبر د اسارت په مفهوم نه و
ډکښي هیڅ سړی ظالم او مظلوم نه و
دوی له هر چا نه نزدي وشنه اسمان ته
ښه تابع و د خدای حکم او فرمان ته
بې له خدایه چاته نه راټیټېده دوی
په دنیا کي له بل چا نه وېرېده دوی
په جهان کي یې نه خوف او نه څه پارو
مشکلا تو سره جنګ د دوی روزګارو
دوی لېدلی و هر وخت خړ سېلابونه
دوی مات کړي و د هر چا ورمېږونه
آزادي د دوی په خټه کښي ښکاره وه
د آسمان سپوږمۍ د دوی په ننداره وه
ښه ځانګو د آزادۍ دغه هیوادو
هر سړی یې په خپل عزم کي فرهادو



ښاغلی [زمریالی]

# ترانه

زموږ وطن افغانستانه! ته دی اوسی پر دنیا
ستا اولاد دی تل ژوندی وی هم دی لوړ وی تر هر چا

ته جنت یې سر بر مځکه هم ته زړه یې د ایشیا
تمدن دی پخوانی دی هم زانګو یې د آریا
ته ښه مینه د پښتون یې هم ودوی ته لکه مور
که خپل سر تر تا جار نکړی دی افغان ته لوی پېغور
تا زموږ هغه زړه ور پلرونه مندی دی روزلی
چی ستا د پښتنو لوړو شیدی یې دی رودلی
هم تا د دوی د هغه تاریخ پاڼی دی ساتلی
چی دی توره او میړانی په وار، وار دنیا منلی
ستا خاوره د غیرت ده لږ ځه تاوور کړه و ځان ته
هم بیا دی پخوانی هغه درب و ښیه جهان ته
ځګرانی مینی وردونو ژر راځئ چی سره ټول سو
لاس و نه سره ور کړو په یو زړه په یوه بول سو
پر ځای مو وظیفه کړو هم په مینه یو کهول سو
چی هر بیا و ښکاره کړو و دنیا ته د سر خول سو
ټاکلی وظیفی چی نوږ ټبر ته دی نڼکو نه
په کړو کی که ضرورسی باید ور کړو خپل سرونه
مال وطن او نوم مو خپل دی څو چی وس موو تی د ځان
وا لوړ والی تی یو نده او لاس بلاس سو په ښه شان
زموږ اولاد به زموږ به بله باندی راځی لکه زمریان
هم را تلونکی وخت د پر رون دی و وطن ته د افغان
ځکه غواړی هر افغان به خپل وطن ته افتخار
هم به کړی و ټول ټبر و سرا ړی ته خپل سر جار
یو مو دین یو مو آئین یو مو خدای یو مو پیشوا دی
په وینه هسک یو یو هم د قوم مو خپل پاچا دی
نقصان مګیه مو یوه ده که څه شاه دی که ګدا دی
وطن ټبر که لوړ سی د الوړ والی د هرچا دی

راځئ چی په نامه د افغان ټوله راران سو
په ټینګه اسلامی عقیده لوړ پر کل جهان سو

د [ویران] لیکنه

# خپلواکي د ځوانانو په وینو

ګټل کیږي

یو له پوهانو څخه وائي چي (خپلواکي هیڅکله زمږ د انتظار نلري بلکه موږ باید هغه په حصول کي خپلي ویني توی کړو څو ئې لاس ته راولو، د تاریخ په هیڅ کرښه کي دا خبره نسو پیدا کولای چي خپلواکي او ډیموکراسي دي چا ته وړیا پلاس ورغلي وي)

په رشتیا چي هر وخت د هر چا خپلواکي د ښار ګواو د تن په وینو ګټل سوي وي او یوازي وینو تویولو دا کار سرته رسولی وي.

پدې لویه نړی کي تروینو مؤثره اواغیزه ناکه ماده بله نسو موندلای، ویني پداخپل سور او تور بخون رنګ سره کولایسي چي هم اورونه بل کړي او هم اورونه مړه کړي، ولسونه آزاد کړي او هم ئې اسیر کړي مملکتونه وران کړي او هم ئې ودان کړي.

کولای شي چي یو ناتوانه انسان دونه غښتلی کړي چي اندازه ئې څوک نسي لګولای او هم یو قوي انسان دونه ضعیفه کولای شي چي د چا فکر ورته عاجزه وي.

ویني هم جګړه راولي او هم صلح هم ساه ورکونکي ده هم ساه اخیستونکي یعني هم ژوند راولي هم مرګ.

کله تیښته راولي کله مقاومت: په انساني دنیا کي تر ویني قیمتي ماده نه موندل کیږي دغه ماده په پیړیو، پیړیو د ولسونو شرافت خوندي کوي او کله ئې بیا په یوه شیبه ور برباد وي دا ماده د جهان په تودو او سړو کي له منځه ولاړه شي خو اثرات ئې باقي وي.

عاشقان په خپلو وینو عهدو پیمان کوي لویان په خپلو وینو لوړه کوي.

دغه ویني دي چي کله انقلابونه راولي ملتونه او امتونه منځه وړي، ډېر ښکلي زامن له میندو څخه بیلوي خورا ډیری نازولي میرمني له میړو څخه جلا کوي د ډیر عاشقان د قرباني محاذ ته ور-پوري وهي او بې حسابه معشوقي ئې ترخاورو لاندي کړي دي ډیر دستا یلو وړ کارونه ئې هم کړیدي که دي څو تورو او سرو څاڅکو ښار افتونه برباد کړي، اورونه یې بل کړي دي، سوځل وژل نړول او ماتول یې کړیدي قومونو ته یې نجات هم ورکړیدی زیری یې

کړیدی د لګرمي ئې په وجود راوړیدي ډیری معشوقي ئې د عاشقانو غیږی ته ورو ستلي دي د خوشحالي جشنونه او اخترونه ئې ښخښلي دي تر دي

ټولو چي باید انسانان په و نازیږي هغه (خپلواکي) ده چي ولسونه څني برخور داره شویدي.

دا چي کله مظهر د شرافت او کله نمونه د ذلت کله نمایندهٔ د روښنائي کله سبب د ظلمت وي هم زموږ سره وي هم زموږ د دښمنانو سره هم مایع ده

هم جامده هم روانه ده هم ولاړه هم توده ده هم یخه او هم سره ده هم توره ده دا ټول د ویني صفات دي.

زموږ ویني زموږ وجود دی او زموږ وجود زموږ ویني څو ژوندي یو ویني به لرو څو ویني لرو ژوندي به یو.

کله چي د وینو تویولو ورغ راسي نو ښه خبره داده چي د آزادۍ په لار کي توی سي هلته بیا دا قضاوت کیدلای شي چي هدر نه دي تللي.

✲✲✲

لیکوونکی: عبدالحلیم «ظریفی»

# د خپلواکۍ په جګړه کې پېغله

د مازدیګر ژېړې پلوشې وروورو د غرو له لمنو څخه څوکو ته پورته کېدې او د ګران هېواد غازیانو او شهیدانو ته یې د مازیګر

د خپلواکۍ سلام اچاوه او د هېواد هر کاڼي او بوټي، هرې شاړې او ودانۍ ته یې د نوي او خپلواک ژوند مبارکي ویله.

په هغه ځای کې چې د غازیانو او پرنګیانو نښته شوې وه او پرنګیانو د خپل استعمار توره یانې په چپ لاس د عمل نامې په توګه

واخیستله او د پښتون خوا لوړو غرونو ته یې په ټیټو سترګو سلامونه اچول او بیا یې شا ورته راګرځوله.

د هغو لوړو، لوړو غرونو په منځ کښې یوه ځوار لس کلنه پېغله ړنګه ښکه پرته وه او تور اوربل یې په سپین انديتالو نه وهل په سپین

مخ یې د مازدیګر ژېړې پلوشې ځلېدې او په سرو شونډو یې خندا ګلې بد له د جنت د مېوو په امید یې سترګې خوماری او سره ورغلې وې.

د پېلتا نه ترورمېږ د وصال امید ورته وموند او د ځوانې مرګه، مرګ بدل او عوض ته یې لمسوله.

یوه نه شوم چې د ا ښکلې پېغله په کوم ځای لګېدلې ده خو پېده غوندې ښکارېده او یوه درنه توره یې پلاس کې وه چې د ې پېغلې ښي لاس د توري په موټي اېښی و او توره په وینو تسکه سره شوې وه.

د غیرت او همت څپو په سر واخیستم او د دې پېغلې د همت تا بلو سرسام او خیالانه غوندې کړم.

د وطن د مینې او محبت، احساساتو او د ردلوست مې یو ازې د دې ښکلې پېغلې له ښکلي جمال او نوي او تازه ځوانۍ څخه زده کاوه.

د لمر پلوشې وروورو ټیټېدې او د شهیدې پېغلې له سپین مخ څخه یې د خپلواکۍ او د هېواد سر ده وفا په نوم خدای پاماني واخیستله.

د ماښام تیارې شمال سر شو او د شهیدانو د تاوده تن خولې یې وچولې. شمال وار په وار اوچت شو او د فدا کارې پېغلې تور اوربل یې په سپین اندي ونځاوه

د خیال او تعجب څپو وړی وم چې ترشا مې څه پې شو، مخ مې ورواړاوه که ګورم چې یو لوړ او ښایسته ځوان را روان دی او لستوڼي یې بډ

وهلي دي، ځادر یې په اوږه اچولی، لږ وړاندې یې ټپي شو اوړ پرېتو نه لرې له غیرې څخه یې د بری او مېړانۍ نښې ښکارېدې او داسې اوچت، اوچت کېده لکه په چاپېره ګرزېده په ما یې بږغ وکړ چې څوک یې او څه کوې؟

ما ورته ځواب ورکړ:

د غیرت پلټونکی یم او د فداکارانو له غیرت نه په حماسه چیغه یو څوافسانې او نغمې جوړوم د غیرت او

همت په نوم، د ننګیالو په افتخار یو دیوان جوړوم او س وی اې لغوړن لوګی خپلواک ځای ته لېږم.

زه د خبر و په حال کې وم او لوړ قامته ځوان ښه را نژدې شو او په ځوار لس کلنه پېغله یې سترګې ولګېدې، رنګ یې والوت او ولړزېده وار خطا غوندې شو او په سترګو کښې یې اوښکې ښکاره شوې، د جنون سمندر ډوب کړ او غمجن احساسات یې ولوګېدلې

د ۱۴ کلنې پښتنې خوا ته راغی او هغې په ټوپر ته په وينو سره تور ه ئې ښکل کړه .

«داخو ښکاره خبره ده چې داسې غمجنې پېښې ځينې انسانان هيڅ نشي زغملی ، نو زه ځکه بې

اختياره په ژړا سوم او ددې پښتنې دغيرت ، همت فدا-کارۍ او قربانۍ په نوم مې په تن اورولګېد»

دا پښتنه پېغله د استعمار په ګولۍ د خپلواکۍ د غوښتلو په ګناه د زړه په سر لګېدلې وه او د ګڼ کميس

کوتونه ئې د ويالو په شان له سرو وينو څخه ډک ښېده .

ځوان ئې ددې تپو ته کاته او له خولې ئې لاندنۍ چيغې ووتلې :

خوږې او ګرانې خورې ! تا د وطن د محبت په نوم ځان قربان او له پښتنو ځوانانو سره سمه د همت او مېړانې

توره وتړله او له خپل ورور سره اوږه په اوږه وجنګېدې .

ستا د همت او غيرت مقابله به هيڅ پښتون نه هېروي او د غليم درفتن او استعمار تاريخ به ستا د پښتنې شهامت په زور تل

تر تله نسکور او شرمنده وي ، تا هغه زوروور استعمار چلوونکی دښمن مات کړ چې د نړۍ د ډېرو انسانانو او ملتونو په ژوند ئې لوبې کولې او انسان ته ئې د درد

او انسانيت په سترګه نه کتل تا د هغه چا نوم په مځکه وويشت چې امپراطورۍ په ئې چلوله .

شهيدې خور کې !
کاش ! چې ته خو نن شپه ژوندۍ وای او د خپلواکۍ د ټټنګانو په ډله کې تا هم په افتخار سرپورته کړی وای او د ملي اتڼ په سر کې ګډېدلې وای ته مه خپه کېږه !

تا د هېواد راتلونکو زامنو ته کور ودان کړ ، ستا د پاره به اوس په جنت کې لوړې منارې هر کلی وايي ، ستا د شهادت

او ښکلې ځوانۍ هر کلی به کوي او ستا په همت به د جنت حورې آفرين وايي .

ځوان ډېرې خبرې وکړې او پاڅېدلې احساسات ئې ډېر ونځول چې د خبرو په ترڅ کې ما ورڅخه پوښتنه وکړه چې دا پېغله ستا څه کېږي ؟

ځوان جواب راکړ :
«داخو زما سکنې خور ده او له ما سره يو ځای د جهاد د پاره له کوره څخه راووته داخو ورځې اوږه په اوږه سره تللو او جنګ مو کاوه ولې نن راڅخه په ممدې

ځای کې چې سخت اړودوړ ؤ ور که او داده چې اوس مې شهيده موندهٔ کړه» .

اوس نو په آسمان ستورې ځلېدل او د يوه لوړ غره له هغې خوا نه د ډهول ډغ راتله چې غازيانو

د خپلواکۍ د لومړۍ شپې هر کلی کاوه .

د ځنګله له وړو څخه مو ځو اوږده ، اوږده لرګي راپرېکړل او بيا مو سره وتړل شهيدې پېغلې ته مو په

لرګو برسېره ځادر وهېر کړ او بيا مو په ور باندې وغوړ-وله برسېره مو ور باندې خپل زر ، زرې شال وغوړاوه او

ددې شهيدې جنازه مو د غازيانو په خوا را واخسته ما ددې جنازه ډېره په هوس وړه او هر قدم به مې په خوشحالۍ

او افتخار پورته کاوه زړه مې د احساساتو او هوس خزانه شو او ددې ښکلې پېغلې فداکارۍ ته حيران

پاتې وم . او چت ، او چت مو ګامونه پورته کول تر څو چې مطلوب ځای ته ورسېدو .

موږ جنازه کښته کړه او غازيان ور باندې راټول سول ، د خپلواکۍ د ګټلو نو

نور به ۲۵ مخ کې

# د خندا !!!

# پلوشې

د محمد ناصر [نصرت]
ژباړه او ټولونه

### د ښکلا اغزی

وروسته له هغه چې د انګلستان مشهور شاعر «میلتون» ړوند سو، نو دیوې ښکلې ښځې سره ئې واده وکړ. یوه ورځ ئې یوه دوست ورته وویل:

ښځه دې دیوې درختې د ګل په شان ښکلې ده.

شاعر ورته وویل: که څه هم زه نه وینم لیکن کولای سم چې ستا سې خبره تائید کړم ځکه چې د دغه ګل ځوزان زیاتره وخت ما ته آزار رارسوی.

✿❀✿

### نوی موضوع

یو شاعر دبل شاعر ته وویل: څو ورځې پر مې زړه راته وایې چې راسه دشعر ویلو دپاره یوه داسې موضوع پیدا کړه چې تر اوسه هیچا په هغه موضوع کې نه شعر ویلی، او نه ئې تر دې وروسته ووایي.

هاګری شاعر ئې ورته وویل: چې دا خو آسانه خبره ده د ځان په ستاینه کې یوه قصیده جوړه کړه دایې نوی موضوع !.

### دزاړه او ځوان خوراک

یو سپین ږیری او یو ځوان پر یوه ستر خوان سره ناست دواړه وو ژړل. وختې چې له سپین ږیری ځخه پوښتنه وسوه چې پر څه ژاړې؟

هغه وویل: ځکه چې زه غاښونه نه لرم نو هر شی چې موجود دی هغه ټول له په ځوان را ځخه وخوري.

او بیا چې له ځوان ځخه د ژړا علت وپوښتل سو هغه وویل: له دې امه چې دغه سپین ږیری غاښونه نه لری، هره ګوله ژوندی، ژوندی تېر وی او زه ئه سوای پسې رسېدلای.

✿❀✿

### دجنایت او عدالت تو پیر

یوه ورځ «برنارډشا» د نړۍ مشهور لیکوال د جنایت او عدالت په باره کې وویل:

کله چې انسان یو ببر مړ کړی د هغه نوم قوت، شجاعت او دلاوری ایږدی. لیکن که ببر انسان مړ کړ نو هغه وحشت ای سړی خور بولی.

دادی دبشر په قانون کې دجنایت او عدالت اختلاف.

✿❀✿

### معلم او شاګرد

دحساب معلم له یو شاګرد ځخه پوښتنه وکړه

چې که یوه ښځه په یوه ورځ یو کمیس جوړ
کړي، نو دوې ښځې به په دوو ورځو څو جوړې
کالي تیار کړي؟

شاګرد جواب ورکړ چې نیم کمیس.

معلم ورته وویل: داسې معلومېږي چې
خپل زده درسونه دې هېر، او د حساب د علم
قاعدې هم نه پېژنې؟!

شاګرد وویل: ښه پوهېږم لېکن داهم ښه
تر اراته معلومه‌ده کله‌چې دوې ښځې په‌یوه
کار کې سره لګیاوې دومره سره ګړېږي، او په
صحبت اخته وي چې په دوو ورځو کې به‌ نیم
کمیس هم جوړ نه کړای سي.

۞۞۞

## قلم، کاغذ

یو سړی ښځه غوښتې وه، او چې د واده په پنځمه
ئې زوی پیدا سو، نو دستی ئې پلار بازارته
تللی قلم، کاغذ او مشوانۍ ئې رانیولې کورته
ئې راوړل.

ښځې ئې پوښتنه ځنې وکړه: چې دا څه‌شی
او څه په کوې؟

سړي ورته‌وویل: یو هلك چې د مور تر واده
پنځه ورځې وروسته پیدا سي نو هغه باید د
زېږېدو په‌ درېمه‌ورځ مکتب‌ته‌هم ولاړ سي.

۞۞۞

## د عزت مرګ

څرنګه‌چې پوهېږو، لوی فیلسوف «سقراط»
ئې د واهیاتو له‌امله په‌مرګ محکوم کړ. نو
کله‌چې ده ته خبر ورسېد، په‌ ډېره خوښۍ او
خندا سره ئې استقبال کړ.

کومه‌ورځ چې د حکم د اجرا مامور ده‌ته
وویل: چې د مرګ دپاره ځان تیار کړه.

نو سقراط جواب ورکړ چې: زه په‌خپل
ټول عمر کې د مرګ دپاره تیار وم.

جلاد پوښتنه‌وکړه‌چې: په‌څه‌سبب؟

سقراط وویل: ما په‌خپل ژوند کې نه په‌بده
او نه په ښکاره چا ته بد رسولی دی. له
همدې سببه‌کولای سم چې په آرام وجدان
«مرګ» استقبال کړم.

۞۞۞

## د حقیقت ننداره

یوه ورځ سکندر د خپل وخت د خلګو له‌فساد
او منافقت څخه ارسطو ته شکایت کړی او له
هغه څخه ئې یو داسې کومك وغوښت چې سکندر
وکولای سي چې خپل صمیمي او صادق خلګ
له منافقو او دوه‌مخو خلګو څخه بېل، او
وپېژني.

ارسطو ورته‌وویل چې: یو لوی مجلس جوړ
او ګرده خلګ در وغواړه، او هلته ټولو ته
امر وکړه چې په‌هغه مجلس کی آسماني کتاب
وواېي په‌همدې رقم به هغه‌خلګ چې انسان نما
او «دیو» صورت دي د حقیقت ارویدو څخه
په‌تنګ شي، او چې غوږ ونه ئې د حقیقت داروېدو
طاقت نه‌لري ژر به ئې وضع، حرکات او وینا وې
بدلې شي، در ته ښکاره به‌سي.

۞۞۞

## طالب او اوباز

یو طالب او اوباز په یوه کوچنۍ کښتۍ کې
سره ناست، او په سیند کې ئې څه اندازه
لاروهلې وه، طالب له‌اوباز څخه پوښتنه‌وکړه
آیا د «نحوی» علم‌دې خلاص کړېدی؟

اوباز جواب‌ورکړ: چې یه.

طالب‌ورته‌وویل: په‌رشتیا یوه‌سه چې نیم
عمر دې عبث تېر سوېدی. څه‌قدر چې نور ولاړل
سیند طوفاني سو، او غرزنګې، غوټې
څپې ئې په‌رقص راوستلې، طالب‌خوراخوابدی

او بېله کومه شکه ئې ځان په خطر کی لیدی. نو اوباز له طالب څخه پوښتنه وکړه آیا د «اوبازی» علم‌دی زده‌دی؟

طالب جواب ورکړ چې یه.

اوباز ورته وویل: په رشتیا پوه سه چې ټول عمر دی عبث تېر سوی دی.

۞۞۞

## د کور مصیبت

یوه ورځ دیو ملنګ مائنه دخپل همسایه دیوه مصیبت د تسلی دپاره ورتله، ملنګ په مخه ورغی او پوښتنه ئې وکړه چې: چېری ځی؟

مائنی ئې ورته وویل: چې د تسلی دپاره دهمسایه کره ځم.

ملنګ ورته وویل: د کور د کوچنیانو دپاره دی څه غذا مذا برابره کړېده که یه؟

مائنی ورته وویل: څرنګه چې په کورکی نه مالګه، نه اوړه، نه بوټی او نه نور شیان وه نو په څه شی می غذا ورتیاره کړی وای؟

ملنګ په قهر ورته وویل: وختی چې مصیبت زموږ په خپل کورکی وی نو ته بیا ولې د همسایه د تسلی دپاره روانه یی؟؟!.

۞۞۞

## شوخی

یوه ورځ یو سړی دخپلی ښځی او لور سره په الوتکه کی سپاره شول چې له یوه ښار څخه بل ښار ته ولاړ سی.

دسفر په ترځ کی ئې یو لوټ له الوتکی څخه دباندی وغورځوی.

ښځی ئې ورته وویل: چې دا پیسه دی دڅه لپاره وغورځوله؟

سړی ورته وویل: ددې دپاره چې یو لاروی ئې وهومې او به خوشاله سې.

ښځی ئې ورته وویل: چې دوه لوټه ورواچوه چې دوه کسه په خوشاله سی.

سړی یو بل لوټ هم له الوتکی څخه دباندی وغورځاوه.

تردې وروسته ئې لور ورته وویل: چې بابکه! دریم لوټ هم وروغورځوه چې دري کسه په خوشاله سی.

طیاره‌وان چې دغو خبرو اترو ته ښه غوږ نیولی و اتفاقاً دده د ډېرو سختو مخالفینو څخه و ناڅاپه ئې پررا بږغ کړه:

ښاغلی!

لطفاً ځان خپله ارتاو کړه چې ډېر خلک خوشاله کړې.

سړی په جواب کی بېله دې چې کټ، کټ په خنداشو، بل جواب ئې ورنه کړ.

# د ژوندانه لار

علم یو داسی لوی نعمت دی چې په ژوندانه کی دافتخار تاج، او له مرګ نه وروسته یو روڼ یادګار به‌وی. حضرت علی[ک]

۞۞۞

که سړه راغونې شو، دا آغاز دی، که سره راغونې پاتی شو دا پرمختګ دی او که په ګډه مو سره کار وکړ دا بریالیتوب دی.

۞۞۞

دپخوا وختو ډېرښه شیان خوښ کړی او دهغوی پرمخ د آینده بنسټ کښېږدی.

۞۞۞

د زیاتو خلکو دګناهکاری سبب دا نه دی چې پخپله ئې کومه ګناه کړی وی، بلکی موجب ئې دادی چې نورو ته ئې دګناه کولو موقع ورکړی وی. [ارسطو]

د فدا محمد [خواری کښ] لیکنه

# د نن ورځی فلسفی ته

یوه نـوی کتنه

چی فلسفه مو پر دوو عمومی برخوویشل (ایډیا لیزم او ما تر- یا لیزم) ما تریالیزم جهان عین واقعیت او ایډیا لیزم ئې د روحی

او فکری فعالیت محصول ګڼی خو پدی سوال کی چی کوم فکر او شعور جهان پیدا کړی ایډیا- لستان (خیال پرست فیلسوفان) دوه ډوله جواب را کوی ۰

ذهنی ایډیا لستان (سوبجکټیف ایډیا لیزم والا) وایی چی نړی او کائنات د انسانی مغز او ذهن محصول دی که نه هیڅ شـی د باندنی او عینی واقعیت نه لری

چی لوی پیشوائې هماغه (اسقف- بر کلی) مشهور انګلیسی فیلسوف دی چی دده په عقیده ذهن او تصور د ټول عینی واقعیت بنسټ دی که موږ دی فیلسوف ته وو وایو چی ځر ګنه جـهان وجـود نه لری ۰

زه، زما مور، پلار، دوستان وطن او ټول ټولفا بریکی جاردی سماوی او ځمکنی اجرام او اجسام څه شی دی ۰

دی به جواب را کړی چی نه هیڅ نسته دا ته فکر کوی، که زه

ووایم چی نا روغه یم او یا په اوږ وسولم بیا هم وایی دا ته فکر کوی خو هرڅه زما فکر بولی او تردی لوړ و هیڅ شی ته عقیده نه لری خو باید هیره نه سی چی دې

ښاغلی (ذهنی ایـډیا لستان) د دغو مره غیر عملی فکر سره سره ډېر دلایل لـری او د دوی سره مبارزه څه اسانه کار نه دی ۰

بر کلی او نور طرفداران ئې د خپلی نظر ئې د اثبات د پاره داسی مثال راوړی ۰

مثلاً:- دغه مجله چی تاسی اوس لولی او یو موجود شی ئې ګڼی موږ د څه شی څخه پېژنو د دغه جسم (مجلی) د طول (اوږدوالی) عرض (پـسور) او ضـخامت (پنډوالی) څخه پېژنو او د رنګ (سور، تور، شین، او داسی نور) که نه نو نور څه خو نلری ۰

دغه ټول خواص هر یو جلا جلا را اخلی ۰

(مثلاد مجلی طول) وایی: که یو انسان ورته وګوری نو موږ ی مجله په یوه ټا کلی اندازه اوږده وینی خو کـه چنـګښه ور ته وګوری د انسان په نسبت ئې ډېر

(۳)

۰ اوږده وینی او و میږی ته بیا د یوه غره په ډول اوږده معلومیږی ۰

اوس نو د انسان، میږی او چونګښی یعنی کوم یو صحیح دی ۰

دا ډول پـسـر یعنی برنی هم دغسی وګڼه پنډوالی ئې هم انسان ته یوه اندازه وفیل ته بیخی لږ او ویـوه

میږی ته ډېر زیات دی دا نه شوه معلومه چی کوم یو صحیح دی د رنګ په باره کی (د هـرشی) د و ږ ی وایی :-

(د ۲۱ مخ باتی برخه)

هغه غونچی ئې په سینه ور کیښودی چی ددی له وینو ئې رنګ نیولی ؤ، ما دیوه سپین ږیری څخه پوښتنه وکړه چی! «دا فدا کاره پېغله څه نومیده؟»

سپین ږیری وویل! «دا وطن پا لونکی (رڼا) نومېده خو آرمان چی مرګی ټینګه کړه» ۰

د خپلوا کی او نیکمرغه ژوند د پاره (رڼا) خپل ټول امیدونه د اجل په لومو بندل کړل ۰ (پای)

رنګ هم نسته مثلاً د ګه رنګ (مثلاً شنه مجله) انسان شنه وینی خو که عینکې ور ته کښېږدو بیا ئې ژړه وینو دوی وایی :-

چې د بېلو، بېلو حیواناتو دسترګو ساختمان مختلف دی نو ځکه یو ټاکلی جسم هم په جلا، جلا او قسم، قسم رنګو سره وینی د لته ئې رنګ هم نسو معلوم او پر یوه اعتما د نسته.

کرار کرار د یوه شي ټول خو اص (طول، عرض، ضخامت، رنګ، درو ندوالی او داسې نور یو یو نفی کوی

او په پای کې دی نتیجې ته رسېږی چې هیڅ شی وجود نه لری او ټول شیان زموږ د فکر او ذهن محصول دی.

خو موږ دا خبری دا سې ردوو چې اصلی خبره د موجوداتو پر خواصو او

ځرګوالی پاندی نده بلکه اساسی مسئله پخپله د کا ئناتو وجود دی چې په عینی ډول وجود لری.

ځکه که څېړ ی مادی واقعیت او حقیقی موجودات نه وای زموږ پر حواسو څه شی تا ثیر اچاوه او زموږ حواس کوم شی را هتا ثر کول.

جهان په هر ډول چې وی وی به خو اخبره دا ده چې موجود دی او وږ ئې د یوه عینی واقعیت په حیث پېژنو او پر دی خبره باندی

اعتراف کوو چې ټول ذهنی فعالیتونه او افکار، ټولی فکری او معنوی پدیدی او جریانات د مادی او عینی دنیا څخه را پیدا او اصلی بنسټ ئې همدادی.

بلخوا له ایډیا لستان بیا جهان د یوه عینی واقعیت څخه پیدا یو ټاکلی عینی روح فکر او معنی د مادی جهان بنسټ بولی چې په

بېلو بېلو فلسفی سیستمو کښې د (مطلقی ایډیا) (جهان ارادی) او داسې نورو په نامه سره یادېږی خو هغه څه چې دا دواړه فلسفی

سیستمو نه سره تړی هغه دواړو رقمو ایډیالیزم والی دی یعنی تر مادی جهان و معنوی جهان ته په دمخه والی قایلیدل دی.

د ذهنی ایډیالستانو په عقیده موږ جهان نه پېژنو مګر هغه څه چې پېژنو انسانی احساسات او افکار دی اما عینی ایډیالستان وایی چې :-

یا یوازی ایډیا، او (جهانی روح) دی.

یوازی دا خبره هیره نکړو چې ذهنی ایډیالیزم ته (اوبجکټیف ایډیالیزم) او یا انفسی ایډیالیزم هم وایی او

عینی ایډیالیزم سوبجکټیف ایډیالیزم او یا افاقی ایډیالیزم هم بلل کیږی.

خو په هر صورت ایډیالیزم یو زوړ فلسفی سیستم دی چې علم او عملی فعالیت ئې غلطوالی ثابت کړی دی.

هره ورځ چې انسانان د علم او تخنیک د پر مختګ پر لوری یو ګام اخلی وسپوږمۍ ته خېژی د اتم زړه لیری کوی او نوی، نوی انکشافات منځ ته راځی.

دا ټوله هر یو په خپل وار د ایډیالیزم پر پیکر باندی یوه لویه ضربه وه ورده او په اصطلاح د بطلان خط پر کشی و.

نن ورځ د ځینو متعصبو انسانانو څخه پر ته چې د منځنی پېړی خرافاتو ئې په ذهن کې ځای نیولی دی.

نور څوک نه حاضرېږی چې ایډیالیزم ته سر ته تسلیم کړی.

(نور بیا)

---

وجیزه :

د خپلواکی فکر د ظلم او ستم همزولی دی او د آزادی غوښتلو فکر همېشه د ظالمانو د استبداد او شکنجې څخه را زېږېدلی دی.

(دوګلاس)

# د آزادۍ درس

لویه برتانیه چې تر لومړۍ عمومي بین المللي جنګ وروسته ئې د وارسای معاهده د مغلوب المان سره د یو فاتح هیواد په حیث امضا کړه او خپله امپراطوري ئې د لویدیځه تر ختیځه پورې پلنه کړې وه، دومره د غرور او تکبر په میو مسته وه چې په هیچا کې ئې د مقابلې او مبارزې توان نه لیده.

کله چې د افغان پسر آزادۍ مین هیواد ځلمیانو له خوا د خپل پوه رشید او سرباز عسکر اعلیحضرت

محمد نادر شاه په قیادت د خپلواکۍ اعلان وکړ.

نو لویې برتانیې چې د افغان ولس د فطري استعداد او د آزادۍ سره له سرشاره عشق ځنځه که څه هم بې خبره

نه وه او د خپل جهاني قوت په زور مسته وه غوښتل ئې چې زموږ دغه د آزادۍ د حق آواز ته په داسې سخته

ضربه جواب وواییي چې نه یوازې موږ له دغه ملي عزم ځنځه منکر کړي بلکې د خپلو آسیایي او افریقایي نورو

هیوادونو پاره د عبرت درس سي، نو ځکه ئې دا اراده وکړه چې د افغانستان پایتخت کابل د دریم پلا

د پاره بیا اشغال کړي نو ئې لوی او قوي لښکر چې د بلوچستانه تر چترال پورې د زرو میلو په اوږدوالي د ۴۴ نامتو جنرالانو په مشرۍ په افغانستان باندې د حملې تیاري و نیوی.

دوی په دې جنګ کې د لومړي ځل لپاره په آسیا کې له الوتکو ځنځه کار واخیستي، خو پښتني ملي آهني عزم او د وطن پېساري

عشق د نړۍ د دې لویې امپراطورۍ او د لومړي جنګ د فاتح دا ټول خیال پلونه ورشنډ کړل او د نړۍ د دغه لوی امپریالستي قوت د

پښتنو د آزادي خواهي د کلکې ارادې په مقابل کې د تسلیم سر کښېښود.

ځرنګه چې په فزیک کې یو فارمول دی وایي: هر عکس العمل د مقابل قوې په تناسب دی. دغه رنګه انګریزانو چې

په ټوله آسیا کې د پښتنو پر ضد له سخت تشدد ځنځه کار واخیستي پښتنو هم دغه امپریالستي قهرمان

ته د ټول آسیا په نسبت سخته ماتې ورکړه. او که د استعمار د زوال تاریخ وپلټل سي غربي امپریالیزم دا ئې ووار د پاره د پښتو نخوا د غرو له لمنو ځنځه پخپل قهقري رجعت شروع وکړه او دا هغه رجعت

دی چې تر ننورځې پورې دوام لري او نږدې دی چې د آسیا او افریقا له لویو قارو ځنځه استعمار خپل ګودړان ټول کړي.

نو پدې حساب که موږ دا دعوه وکړو چې افغانستان د استعمار پر ضد مجادلو کې د نړۍ په ټوره

بیا د آسیا په لویه قاره کې د آزادۍ قهرمان دی کومه مبالغه به نه وي.

موږ دغه د آزادۍ خواهي پا که هیله یوازې د ځان د پاره نه لرو بلکې د نړۍ د ټولو هیوادو او قومونو

د پاره د خودارادیت د حق په اساس د آزاد ژوند حق ته قایل یو او د نړۍ په

۲۸ مخ کې

د نورو له افکارو څخه :

# خپلواکی

خپلواکی د یوه سړی حق نه دی بلکه د ټولو مال دی .

(سپنسر)

۞ ۞ ۞

د خپلواکی مینه د انسان د ژوند سره یو ځای پیدا شوی ده .

( درایدن )

۞ ۞ ۞

خپلواکی لکه نهالګی داسی دی که یو ځل به مځکه کی کښېښود ل شی او خپلی ریښی ټینګی کړی بیا ژر وده کوی .

(واشنګټن)

۞ ۞ ۞

پاك خدای (ج) ټولنی او ملتونه د خپلواکی په ورکولو نمانځی او په نه ورکولو ئې په عذاب وی .

(سویشن)

۞ ۞ ۞

اې خپلواکی ! په ډېر تأثر سره وایم چی بشر ستا سزا واره نه دی .

(تورګو)

۞ ۞ ۞

ماته خپلواکی راکړی یا مرګ .

(پل هاندی)

(۲۷ مخ پاتی برخه)

هره ګوښه کی هر څوك چی د دغه حق د حاصلولو د پاره مجادله کوی زموږ ملاتړ ئی تر شا دی .

اوس چی موږ د خپلی آزادی ۵۰ کالیزه نمانځلو و زړونه مو د هغو محکومو ولسونو په تیره بیا زموږ د پښتونستانی ورونو سره دی چی د خپلی آزادی د پاره هلی ځلی کوی .

په پای کی وایم تل دی وی استقلال ژوندی دی وی زموږ معظم ټولواك .

آزاد دی وی محکوم پښتونستان .

هغه څوك چی د ځان ساتنی د پاره د خپلواکی څخه تیرشی د خپلواکی او سلامتی وړ نه دی .

( فرانکلن )

KANDAHAR

MONTHLY MAGAZINE

OFFICE:-

PRESS DEPARTMENT

KANDAHAR, AFGHANISTAN

EDITOR: ZALMAI 'BARAK'

(SEPTEMBER) 1968

GOVERNMENT PRESS

د امتیاز خاوند: د طلوع افغان نشراتی مؤسسه

مسئول مدیر: زلمی (بارک)

کندهار

میاشتنی خپرونه

تاریخی، اجتماعی، علمی، ادبی

اداره: د شهیدانو واټ

د تاسیس کال ۱۳۳۹

د ۹ کال شپږمه ګڼه

کالنی بیه

په کندهار کی [۲۸] افغانی

د هیواد په داخل کی [۳۲]

په دباندنیو هیوادو کی یو ډالر

پر له پسی ګڼه ۹۶

د کندهار دولتی مطبعه



د خپلواکۍ څلی